ورځپاڼه

# هیواد

مؤسس: عبدالرووف بېنوا | د تاسیس کال ۱۳۲۸ لمریز | **یکشنبه د رمضان المبارک ۹ مه ۱٤٤٦ ق کال،** د کب ۱۹ مه ۱٤۰۳ ل کال، د مارچ ۹ مه ۲۰۲۵ م کال، خصوصي گڼه ۵٦۳ مه، پرله پسې گڼه ٦۵۳ مه، اتمه دوره


امارت اسلامی افغانستان
وزارت ارشاد، حج و اوقاف
اوقات افطار و سحری ولایت کابل

| | |
|---|---|
| رمضان | ۹ |
| ایام | یکشنبه |
| تاریخ | ۱٤۰۳/۱۲/۱۹ |
| افطار | ٦:۱ |
| عشاء | ۷:۲۰ |
| ختم سحری | ٤:٤۰ |
| آذان فجر | ٤:٤۵ |

## مجاهد: محاکم او نور ارگانونه مکلف دي چې د ښځو له حقوقو څخه ساتنه او څارنه وکړي

د افغانستـــان د اســـلامي امارت ویاند مولـــوي ذبیح‌الله مجاهد وایي، چې مېرمنې زموږ میندې، خویندې، لورگانـــې او د ژوند شریکانې دي. کوم حقوق چې اســـلامي شریعت ورته معرفي کړي، اســـلامي امـــارت د هغو حقوقو په ورکړه او ساتنه ځان مکلـــف بولي.دغه‌راز د ښـــځو عفت، عـــزت او شرعي حقوق ساتل د اسلامي امارت اولویت دی.ښاغلي مجاهد زیاتوي، چې نن سبا افغان مېرمنې له فزیکي او رواني پلـــوه پـــه مصئونیت کـــې ژوند کوي او د ښـــځو پر وړاندې د هر ډول خشونت او تاوتریخوالي مخه نیول شـــوې. هېڅوک نشي کولای ... ۳مخ

### ملگري ملتونه:
# تېر کال د افغانستان اقتصاد ۲،۷ سلنه وده کړې



د ملگـــرو ملتونو سرمنـــشي انتونیو گوترش د افغانستان په تړاو په خپل درې میاشـــتني راپـــور کـــې ویلي، د امریکایي ډالرو پر وړاندې د افغانیو ارزښت پر لوړوالي سربېره تېر ۲۰۲٤ ز کال کې د دې هېـــواد اقتصاد ۲.۷ ســـلنه وده کړې ده. انتونیو گوترش ویلي: (( افغانســـتان د ۲۰۲٤ ز کال د نومبر له لومـــړۍ د ۲۰۲۵ د جنوري تر ۳۱مـــې نېټې پورې پـــه اقتصادي برخه کې ۲.۷ ســـلنه وده کړې او په دغې موده کې د امریکایي ډالرو پر وړاندې د افغانیو ارزښـــت هم ۱۵.۷ سلنه لوړ شـــوی دی.)) ورته مهال د اسلامي امارت مسئولین ... ۳مخ

## تېرو ۱۱ میاشتو کې له افغانستان څخه ۱۱۰۰ ټنه جلغوزي صادر شوي

د صنعت او ســـوداگرۍ وزارت وايـــي، د روان لمریـــز کال پـــه ۱۱ میاشـــتو کې د څـــه باندې ۱٤ میلیونـــو ډالـــرو په ارزښـــت له ډېر جلغـــوزي چین، پاکســـتان، متحدو عربي اماراتـــو، امریکا، اردن، اتریش، ایټالیا، انگلســـتان او فرانســـې ته صادر شوي دي.



زرو ټنـــو زیات جلغـــوزي نورو هېوادونو ته صادر شـــوي دي. د دې وزارت د معلوماتو له مخې، د صنعت او ســـوداگرۍ وزارت ویاند، اخندزاده عبدالسلام جواد ویلي: ... ۳مخ

## کابل کې یوې خیریه موسسې سره د همکاریو هوکړه وشوه

د شـــهیدانو او معلولینـــو چارو وزارت او د (زید اف اې) خیریه مؤسسې ترمنځ د یتیمانو، کونډو او معلولیـــت لرونکـــو وگړو د ملاتـــړ پـــه موخـــه د همکارۍ هوکړه لیک لاسلیک شو یـــاد وزارت د یـــوې خبرپاڼې په خپرولـــو سره ویلي ، چـــې د دې هوکړه لیک له مخې به په کابل، کندهـــار، هلمند، بغـــلان، تخار او بدخشـــان ولایتونـــو کې دوه زره مســـتحقو یتیمانو، کونډو او معلولینو تـــه د روژې په مبارکه میاشـــت کـــې ۵ ډولـــه خوراکي توکـــي چمتو او ووېشـــل شي.په خبرپاڼـــه کې لـــه یـــادې خیریه مؤسسې څخه یتیمانو، کونډو او معلولینو ته د مرستو چمتو کولو له کبله مننه او په راتلونکي کې د نورو همکاریو ... ۳مخ




## تېرو څو میاشتو کې د سوري زېږه پر ناروغۍ د اخته ۱۸۹۲ ماشومانو درملنه شوې

د افغاني سرې میاشتې ټولنه یو بشرپال، د ځان بسیاینې پر لور روان او د سره صلیب او سرې میاشـــتې د نړیوال غورځنگ د اصولـــو منونکـــې او په ټول هېواد کې له ټولو زیانمنو وگړو ته د بشرپالو خدمتونو وړاندې کوونکې بنســـټ دی.د افغان سرې میاشتې ټولنې د مسئولینو په ویـنـا، په په تېرو یوولســـو میاشتو کې افغاني سرې میاشتې ۱۸۹۲ تنه د سوري زېږه ناروغان داخلي روغتونونو ته د درملنې لپاره ور معرفي کړي او در ملنه یې په ښه شان او په وړیا ډول تر سره شـــوې ده.د افغاني سرې میاشـــتې ټولنـــې د اطلاعاتو او ورځپاڼې خبریـــال ته ویلي: دا مهال ۳۱٤٦۲ تنه د سوري زېږه




عامـــه اړیکو رئیـــس او ویاند مولوي مدثر همـــراز د هېواد په ناروغۍ اختـــه ناروغان له افغاني سرې میاشـــتې سره ثبت دي او په نوبت د درملنې لپاره داخلي روغتونونو ته ورپېژندل کېږي. ښـــاغلي همـــراز زیاته کـــړه، چـــې د ســـوري زېږه په ناروغـــۍ پر هـــر اخته ناروغ له ۷۵۰ ډالرو څخـــه تر ۲۳۵۰ ډالرو پورې لگښت راځي چې د سرې میاشـــتې ټولنې له لورې ورکـــول کېږي.نوموړي وایي، چې سره میاشت هغه ماشومان چـــې عمرونه یې لـــه یوه کال څخـــه تر ۱۱ کالـــو پورې وي او په اور سوځېدلي او یا هم د هډوکو د میکروب په ناروغۍ اخته وي؛ هر کال ... ۳مخ

## د عدلیې وزیر د اسلامي ټولنې له لوري جوړ شوي نړیوال کنفرانس کې گډون وکړ

د اسلامي امارت د عدلیې وزارت سرپرست شیخ عبدالحکیم شرعي الاســـلامیة تر نوم لاندې تېر شوي نړیوال کنفرانس کې گډون وکړ.




په سعودي عربستان کې د المؤتمر الدولي بناء الجســـور بین المذاهب د اســـلامي امارت مرستیال ویاند ملا حمدالله فطرت ... ۳مخ

## د پاکستان له زندانونو ۱۲ تنه افغانان خوشې شول

کراچـــۍ کـــې د افغانســـتان سرکونســـل عبدالجبار تخاري وایـــي: ۱۲ تنه افغـــان کډوال د پاکســـتان د ســـند ایالـــت له بېلابېلو زندانونو خوشـــې او د سپین بولدک له لارې افغانستان ته لېږدول شـــوي دي. تخاري زیاتوي ،چـــې د ناقانونه افغان کډوالو د اېســـتلو پـــه تړاو د پاکستان د حکومت پر اعلان سربېره هم افغانان په سند کې له هېڅ راز ستونزو سره مخ نه دي. ده زیاته کړې، چې په سند صوبه کې د پاټې افغان بندیانو د خوشې کولو ... ۳مخ

## د حیرتان وسپنې پټلۍ د گټې اخیستنې، ساتنې او پاملرنې تړون و غځول شو

د ټولگټـــو وزارت وایـــي، تېره اوونـــۍ د دې وزارت تخنیکـــي پلاوي ازبېکســـتان ته د حیرتان پلاوي د ازبېکســـتان د وســـپنې پټلۍ اداري سره مفصل او بريالي مذاکـــرات ترسره کـــړل، چې د



بندر اړونـــد د ریلي همکاریو د پراختیا په موخه سفر وکړ .یاد وزارت زیاتـــوي: دې تخنیکي دوه اړخیـــزې همکارۍ په پایله کې د حیرتان وسپنیزې کرښې د گټې اخیستنې قرارداد په غځولو هوکـــړه وشـــوه.د ازبېکســـتان هېـــواد (ســـوگدیانا ترانس) کمپنۍ په حیرتان بنـــدر کې د گټې اخیستنې، ساتنې او څارنې برخو کـــې خدمـــات وړاندې کوي، چې له یادې کمپنۍ سره د قرارداد موده پای ته رسېدلې وه . تـــاکل شـــوې ده،چـــې له یـــاد هوکـــړه لیک وروســـته د افغانســـتان او ازبېکســـتان هېوادونـــو د اړوندو لوړپوړو مســـئولینو له خـــوا د حیرتان د بهـــره بـــرداري او حفظ او مراقبت تړون د راتلونکو دوو کلونو لپاره وغځول شي.

## فراه کې د یوې پروژې چارې بشپړې شوې

د فـــراه ولایت د ښـــاروالۍ ریاســـت د فـــراه ښـــار د ۲۲ ســـرکونو د روښـــانتیا لپاره د څه بانـــدې ٦ میلیونو افغانیو په لگښـــت د یوې پروژې د بشپړېدو خبر ورکړی دی.د فراه ښـــاروال مفتـــي سردار محمد مرصـــاد وایي، چې په دې پروژه کې د فراه ښار د ۲۲ بېلابېلو سرکونو د څراغونو نوي کول او بیارغول شـــامل دي، چـــې د ښـــاروالۍ لـــه پراختیایي بودجې څخه پرې ٦ میلیونـــه ۳۰۰ زره افغانـــۍ لگښـــت راغلـــي دي. مرصاد زیاته کړې... ۳مخ

## هیواد کې د پستې بڼونو پر جوړولو خبرې وشوې

د کرنې، اوبو لگولو او مالدارۍ وزیر مولـــوي عطاءالله عمري د افغانســـتان د صنعتکارانو ټولنې له یـــو شـــمېر غـــړو سره لیدنه کړې.د دې لیدنې پر مهال د یادې ټولنې غړو په هرات کې د پستې بڼونو د جوړولو لپاره د زرگونو جریبه ځمکې د تثبیت، کرکیلې او کرنیزو فعالیتونو ته د مناسبې ځمکې د سروې ... ۳مخ



## متحدو عربي اماراتو کې مېشتو افغانانو ته زرگونه الکترونیکي پېژندپاڼې وېشل شوې

د احصایـــې او معلوماتـــو ملي اداره وایـــي: پـــه متحدو عربي اماراتو کـــې د اســـان خدمت مرکز له لـــوري ۳٤۵۰ افغانانو تـــه الکترونیکـــي پېژندپاڼې، ۲۷۰ تنـــو تـــه د الکترونیکـــي پېژندپاڼـــو له وېش وروســـته خدمتونـــه او ٦۵۰ نـــورو ته د کاغـــذي پېژندپاڼـــې د اصلاح خدمتونه وړاندې شـــوي دي.د متحده عربي اماراتو په ابوظبي ښـــار کې د اسان خدمت مرکز مدیـــر نعمان اکـــبر وایي، چې په ورځنـــي ډول شـــاوخوا ٦۰ کســـان ورته مراجعـــه کوي.د ښـــاغلي اکبر په ویـنا یاد مرکز ته په کاناډا، امریکا، اروپایي هېوادونو او ... ۳مخ



## سرلیکنه



# روژه او بازارونو کې د خوراکي توکو د بیو لوړوالی

روژه د صبر، زغم، همکارۍ او تقوا میاشت ده، روژه انسان ته د صبر، قناعت او له نورو سره د خواخوږۍ درس ورکوي. له بده مرغه، هر کال په افغانستان او ورته هېوادونو کې د روژې له پیل سره سم، د خوراکي توکو بیې لوړېږي. د دې پر ځای چې کاروباریان او شتمن خلک د خلکو پر حال رحم وکړي، ډېر یې هڅه کوي چې له دې مبارکې میاشتې اقتصادي گټه پورته کړي، چې دا هر څه د بېوزلو او منځني قشر لپاره ستر مالي فشار جوړوي.

ځینې سوداگر دلیل وړاندې کوي، چې د بیو لوړوالی د عرضې او تقاضا طبیعي پایله ده، خو حقیقت دا دی چې د ډېرو توکو نرخونه قصداً لوړ ساتل کېږي. سوداگر د دې پر ځای چې د روژې د برکت لپاره د نرخونو کمولو ته کار وکړي، هڅه کوي چې له اړتیاوو ناوړه گټه واخلي. د خوراکي توکو احتکار، مصنوعي کمښت او د ډېرې گټې تمه هغه ستونزې دي چې هر کال د روژې په ورځو کې زیاتېږي.

اسلامي ارزښتونه موږ ته د انصاف، مهربانۍ او د خلکو د لاسنیوي درس راکوي. رسول الله ﷺ فرمایلي: «رحم کوئ، تر څو پر تاسې رحم وشي.» دا حدیث موږ ته راښيي چې د نېکمرغۍ راز په دې کې دی چې موږ پر نورو رحم وکړو. نو که شتمن او کاروباري خلک له خپلو مسلمانانو ورونو سره انصاف نه کوي، آیا دا به د روژې له روحیې سره سمون ولري؟ سوداگر، شتمن او کاروباریان باید د روژې د احترام له مخې د توکو بیې ټیټې کړي، نه دا چې گټه ډېره وکړي.

حکومت باید بازار ته جدي پاملرنه وکړي، اړینه ده چې دولتي ادارې او سوداگریزې اتحادیې هم د احتکار او زېرمه کولو مخنیوی وکړي.

د روژې پیغام او ښوونه دا ده، چې شتمن باید له بېوزلو سره مرسته وکړي. دا مرسته یوازې د افطاري ورکول نه دي، بلکې د بازار قیمتونه ټیټ ساتل هم د خیر او مرستې یوه بڼه ده.

روژه یوازې د عبادت میاشت نه ده، بلکې د اخلاقي ازموینې دوره هم ده. شتمن، کاروباریان او ټولنیز مشران باید درک کړي چې د خلکو د ژوند هوسا کول دیني او انساني مسئولیت دی. که موږ د دې میاشتې سپېڅلتیا ته درناوی لرو، نو باید د انصاف اصل ته ژمن پاتې شو، ځکه چې حقیقي روژه یوازې د لوږې او تندې زغمل نه دي، بلکې د نورو د لوږې او تندې احساسول، د اړمنو لاسنیوی او د عدالت رواجول دي.

# داعشي خوارج د کفري نړۍ اجیران او پر وړاندې یې د اسلامي امارت بریالي او ځپونکي عملیات

**ځواک یوسفزی**

په اوسني وخت کې، د داعش خوارجو په نوم یوه افراطي ډله، چې ځان د اسلام مدافعین بولي، د نړۍ په مختلفو برخو کې د ترهگرۍ، وینو بهولو او گډوډۍ عامل گرځېدلې ده. دا ډله د کفري نړۍ د استخباراتو یوه جوړه شوې پروژه ده، چې د اسلام د بدنامولو، د مسلمانانو ترمنځ د تفرقې اچولو او د اسلامي امت د کمزوري کولو لپاره یې په مختلفو نومونو د فعالیت هڅه کړې ده.

دوی د جهاد تر نوم لاندې د بې گناه مسلمانانو د وژلو، د عامو خلکو د وېرولو او د اسلامي امت د وحدت د تخریب لپاره نه بښونکي جنایتونه کړي دي.

په دې محدوده لیکنه کې به د داعش خوارجو د اجیر ماهیت، د دوی د کفري بادارانو اهداف او د اسلامي امارت قاطع اقدامات وڅېړو، ترڅو روښانه شي چې څنگه اسلامي امارت د دې فتنې پر وړاندې خپل دیني، سیاسي او نظامي مسئولیت ادا کړی او کوي یې.

داعش خوارج هغه وحشي، اجیر او د کفري استخباراتو کرایه شوي قاتلان دي چې د اسلام له سپېڅلي نوم څخه ناوړه استفاده کوي، خو په حقیقت کې د اسلام دښمنانو ته کار کوي. دوي د کفري قوتونو هغه وسیله ده چې د مسلمانانو ترمنځ وینه تویوي، اسلامي امت کمزوری کوي او د اسلام پر وړاندې د کفري اهدافو پلي کولو ته لاره هواروي.

د دوی وحشت او بربریت د اسلام له اساسي اصولو سره هېڅ تړاو نه لري، بلکې یوازې د هغو استخباراتي شبکو د شومو موخو د تحقق لپاره دي چې غواړي د اسلامي نړۍ وېش او کمزورتیا ته دوام ورکړي.

د دې مزدورې ډلې جنایتونه، تخریب او وینه تویونه یوازې د پردیو لپاره گټه لري. دوی د اسلامي امارت، د مجاهدینو، عالمانو او عامو بې گناه مسلمانانو پر ضد جنگېږي، ترڅو دښمن ته دا زمینه برابره کړي چې د مسلمانانو د اتحاد پر ضد خپل پلانونه پلي کړي.

دا فتنه‌گر په اصل کې د هغو هېوادونو له لوري تمویلېږي، تنظیمېږي او روزل کېږي چې د اسلامي نړۍ د کمزوري کولو اوږدمهاله ستراتېژي لري.

که د دوی پټنځایونو، اکمالاتو او فعالیتونو ته وگورو، نو ښکاري چې دوی له بهره اداره کېږي او د هغو هېوادونو له لوري خوندي ساتل کېږي چې تل یې د اسلامي نړۍ پر ضد د پردې تر شا فتنې راپارولې دي. همسایه هېوادونه، چې له کلونو راهیسې د پردیو استخباراتي جگړو لپاره زمینه برابروي، د دې فتنه‌گرې ډلې د ساتنې، تمویل او تجهیز اصلي سرچینې دي. د دوی مشران هلته خوندي پټنځایونه لري، هلته روزل کېږي، وسلې ترلاسه کوي او بیا د اسلامي امت د ورانولو لپاره استول کېږي.

دا یو ښکاره حقیقت دی چې داعش خوارج یوازې هلته راټوکېږي، تغذیه کېږي او پراخېږي چېرې چې د دوی د بقا لپاره زمینه برابره شوې وي. هغه هېوادونه چې تل یې د اسلامي نړۍ د بدبختۍ لپاره د بهرنیانو اجنډا عملي کړې، د دې مزدورو قاتلانو لپاره اصلي پټنځایونه دي. دا د کفري استخباراتي شبکو یوه طرحه ده چې د دې اجیرانو په وسیله د اسلامي امت قوت له منځه یوسي او مسلمانان تل په جگړو، ترور او گډوډۍ کې بوخت وساتي.

مسلمانان باید د دې فتنه‌گرو اصلي څېره وپېژني، د دوی د درواغجنو شعارونو تر شا پټ حقیقت درک کړي او د دوی پر ضد راویښ شي. که د دوی د ملاتړ کوونکو، روزونکو او پناه ورکوونکو ریښې پرې نه کړای شي، نو دا جگړه به دوام ومومي او د امت وینه به تویېږي. اسلامي امت باید خپل صفونه یو کړي، د دوی پر ضد دریځ ونیسي او اجازه ورنه کړي چې د کفري استخباراتو مزدوران د دوی ترمنځ فتنه واچوي.

داعش خوارج د خپل تشدد، افراطي عقیدې او دیني تحریف له امله د اسلام له مقدسو اصولو سره ټکر لري. د دوی اعمال نه یوازې له شریعت سره هېڅ تړاو نه لري، بلکې هغوی د کفري هېوادونو لپاره د وسیلې په توگه کار کوي، ترڅو اسلامي امت کمزوری کړي.

دا ډله د فساد، فتنې او بې‌رحمۍ یوه بېلگه ده، چې هدف یې یوازې د مسلمانانو ترمنځ نفاق او وینه تویول دي.

خو د اسلامي امارت سرښندونکو مجاهدینو د دې فتنه‌گرو پر وړاندې کلک او هوښیار دریځ نیولی او د دوي د فزیکي او فکري شتون د له منځه وړلو لپاره یې جدي اقدامات کړي دي.

اسلامي امارت نه یوازې د داعش فزیکي پټنځایونه له منځه وړي، بلکې د دوي تبلیغاتي او فکري اډانې یې هم ویجاړې کړې دي. د اسلامي امارت مجاهدینو د اسلامي امت د ساتنې لپاره، د خوارجو پر ضد مؤثر عملیات ترسره کړي، چې نتیجه یې د دې ډلې د نفوذ کمزوری کېدل دي.

داعش خوارج د اسلام تر نامه لاندې د کفري نړۍ اجیران دي چې د اسلام د سترو اصولو او د مسلمانانو د گډوډولو لپاره کار کوي.

دوی ځانونه د اسلام د استازو په توگه وړاندې کوي، خو په حقیقت کې د دوی کړنې له اسلام سره هېڅ تړاو نه لري. دا ډله نه یوازې د اسلام له اصولو سره په ټکر کې ده، بلکې د مسلمانانو تر منځ گډوډي، وېش او بې اتفاقي رامنځته کوي.

داعش خوارج د اسلام د مقدسو اصولو او د مسلمانانو د متحد کېدو لپاره د یووالي د هرې هڅې د ناکامۍ کوشش کوي. د دې ډلې کړنې نه یوازې د اسلام له دین سره په ټکر کې دي، بلکې د اسلامي امت او اسلامي ارزښتو په وړاندې یو لوی گواښ بلل کېږي، همدارنگه د دې ډلې په کړنو کې د ظلم، بې رحمۍ، بې عدالتي او بې گناه انسانانو وژنه هم شته. د دوی هغه کړنې چې د جهاد په نامه ترسره کیږي، د اسلام له حقیقي مفهوم سره هیڅ تړاو نه لري. د دوی اعمال نه یوازې د شریعت له فکري او فقهي اصولو سره په ضد کې دي، بلکې د دوي ټول اهداف د کفري نړۍ په گټه دي، چې د مسلمانانو تر منځ د گډوډۍ لپاره کار کوي.

دا ډله یوازې د اسلام د دښمنانو د پلانونو لپاره کار او کفري نړۍ ته خدمت کوي چې غواړي د اسلام او مسلمانانو پرمختگ وځنډول شي.

داعش خوارج د کفري نړۍ اجیران دي چې د بی گناه مسلمانانو او د اسلامي امت ستر اتلان شهیدانوي او د مسلمانانو د بې اتفاقۍ لپاره کار کوي. دوی نه یوازې په افغانستان، بلکه په ټوله نړۍ کې د اسلام د اصولو د خپرولو لپاره خطرناک مانع بلل کیږي. د دې ډلې هدف د اسلام د پرمختگ مخنیوی دی، نه یوازې په افغانستان کې بلکې په ټوله اسلامي نړۍ کې.

دوی د مسلمانانو ترمنځ د دښمنۍ او گډوډۍ د رامنځته کولو لپاره کار کوي. د داعش خوارجو یو له اصلي اهدافو څخه دا دی چې د اسلامي نړۍ د یووالي مخه ونیسي او مسلمانان د خپلو عقایدو پر سر د جنگونو په میدان کې ښکېل کړي. دوی غواړي چې د مسلمانانو ذهنونه له حقیقي اسلام څخه واړوي او د کفري نړۍ سیاستونه پر اسلامي امت تطبیق کړي.

داعش خوارج د اسلام او د ټولې اسلامي نړۍ لپاره یو جدي گواښ بلل کیږي. دغه ډله د مسلمانانو د ټولنې د گډوډولو لپاره کار کوي او خپله افراطي ایدیولوژي د دین په نوم د ټولې نړۍ لپاره خپروي. دا خوارج یوازې ځانونه د اسلام استازي گڼي، خو د اسلام په سترو اصولو کې افراطي کړنې ترسره کوي. دوی د افغانانو په منځ کې د فساد د پراختیا لپاره کار کوي او د مسلمانانو تر منځ وېش رامنځته کوي.

دا خوارج د ټولو مسلمانانو د گډوډۍ او تفرقې په لټه کې دي. دوی د جهاد په نوم ظلم کوي، بې گناه مسلمانان شهیدانوي او کوشش یې د امت د رهبرانو شهیدانول دي.

خو اسلام هغه دین دی چې د حق، صداقت، عدل، انصاف او د ټولو خلکو تر منځ د سولې او اتحاد په لور رهنمایي کوي. داعش خوارج په حقیقت کې د اسلام د اصولو خلاف هره کړنه کوي.

د افغانستان اسلامي امارت د دې خوارجو پر ضد خورا جدي اقدامات ترسره کړي. اسلامي امارت د داعش خوارجو پر ضد سخت جهادي عملیات وکړل، چې نه یوازې د دوی فزیکي شتون یې له منځه یوړ، بلکې د دوی ټولې فکري شبکې او ایدیولوژیکي بنستونه یې هم نابود کړل. اسلامي امارت د جهاد پر اساس د دې خوارجو پر ضد مقاومت وکړ او د دوی د افراطي اجنډا د خپرولو مخه یې ونیوله. د اسلامي امارت د شجاعانه کړنو له کبله، د داعش خوارجو پټنځایونه ویجاړ شول، د دې ډلې د مشرانو گڼ شمېر ونیول شول او د دوی د شبکو د اړیکو مخه ونیول شوه. اسلامي امارت نه یوازې د دې خوارجو فزیکي شتون نابود کړ، بلکې د دوی د فکري پروپاگندونو د نشتوالي لپاره یې پراخه مبارزه پیل کړه. په دې توگه، داعش خوارجو د اسلامي امارت د بریاوو په وړاندې خپل هر ډول اقدام له لاسه ورکړ.

په افغانستان کې د اسلامي امارت بریا د داعش خوارجو د ملا ماتولو سبب شوه او د دوی پلانونه په ټوله سیمه کې ناکام کړای شول.

د اسلامي امارت له لوري د داعش خوارجو پر ضد مبارزه یوازې په فزیکي جنگونو کې نه وه... ۳مخ

# د مسلمان ځوان د فکري تشخص بحران

**محمد قاسم عزام**



په معاصر وخت کې د مسلمان ځوان له ټولو ستر فکري امتحان دا دی چې څنگه خپل اسلامي هویت وساتي، د غربي فکري یرغل پر وړاندې ثابت پاتې شي او د اسلامي تمدن د احیا لپاره فکري خپلواکي وساتي. دا بحران یوازې یو نظریاتي بحث نه دی، بلکې یوه عملي مبارزه ده چې د قرآن، سنت، تاریخ او معاصرو واقعیتونو په رڼا کې باید تحلیل شي.

دا فکري مبارزه له هغه وخته روانه ده چې غربي تمدن د خپلو ارزښتونو د ترویج لپاره د استعمار، رسنیو، تعلیم او سیاسي فشار له لارې اسلامي ټولنې کمزورې کړې. مؤمن ځوانان اوس د دوو فکري قطبونو ترمنځ واقع دي: له یوې خوا، د اسلامي اصولو ساتنه، چې د دوی د دیني هویت تضمین کوي او له بلې خوا د غربي تمدن جذابیتونه، چې د مادي نړۍ ښایستونه، فردي آزادي او له دین څخه جلا ژوند ته بلنه ورکوي.

د فکري جگړې له ټولو پیاوړې وسیله د غرب کلتوري یرغل دی، چې د تعلیم، رسنیو، هنر، سینما او ټولنیزو شبکو له لارې پر مسلمان نسل اغېزه کوي. دا یرغل د هغو مفاهیمو د ترویج له لارې ترسره کېږي چې له اسلامي عقیدې او ارزښتونو سره مستقیم ټکر لري. غربي فکري منحرفین هڅه کوي چې مسلمان ځوان د خپل دین له بنسټیزو اصولو بېل کړي، د اسلام د اخلاقي نظام پر ځای مادي اخلاق ترویج کړي او مسلمان نسل ته داسې یو فکر ورکړي چې دوی له خپل دیني تمدن څخه پردي کړي. دا هماغه شی دی چې قرآنکریم یې د کفري قوتونو د ارادې په توگه یادونه کړې: (البقرة: ۱۰۹) ژباړه: د دې آیت تشریح دا ده چې د اهل کتاب یو شمېر خلکو غوښتل چې مسلمانان له خپلې عقیدې څخه واړوي، ځکه چې دوی د اسلام پرمختگ زغملای نه شي. دا د فکري جگړې هماغه شکل دی چې نن د رسنیو، نصاب، فلمونو او کلتوري فشار له لارې مسلمان نسل ته وړاندې کېږي.

په تاریخي لحاظ، کله چې مسلمانانو خپل فکري تشخص وساته، د نړۍ مشري یې وکړه. د نبوي دورې صحابه، تابعین او د اسلامي تمدن زرین عصر هغه وختونه وو چې مسلمانان نه یوازې په عقیدوي لحاظ قوي وو، بلکې علم، تمدن او سیاست کې هم مخکښ وو. د عباسي خلافت په دوره کې، اسلامي تمدن د علم، هنر، سیاست او اقتصاد په هره برخه کې دنیا ته ویاړ ورکړ. مسلمانانو د یونان، فارس او هند علومو ته نه یوازې لاسرسی پیدا کړ، بلکې لا یې وده ورکړه او د اسلام له اصولو سره یې تطبیق کړ. دا هغه دوره وه چې ابن سینا، فارابي، البیروني، امام غزالي او نور ستر اسلامي مفکرین پیدا شول.

خو کله چې مسلمانانو خپل فکري استقلال له لاسه ورکړ، د غرب تقلید ته یې مخه کړه او د اسلامي ارزښتونو پر ځای یې پردي نظامونه غوره کړل، زوال یې پیل شو. اندلس چې د نړۍ له ټولو پرمختللی اسلامي تمدن و، هغه وخت سقوط وکړ چې مسلمانانو د خپل دیني هویت پر ځای د کفري تمدن د ژوند بڼه غوره کړه. دا د تاریخ هغه تکرارېدونکې تجربه ده چې که مسلمانان خپل فکري تشخص له لاسه ورکړي، نو یوازې سیاسي نه، بلکې تمدني او اجتماعي زوال ته به هم ورسېږي.

د غربي تمدن د فکري یرغل یو مهم هدف دا دی چې اسلامي هویت له منځه یوسي، د اسلامي عقیدې بنسټونه متزلزل کړي او مسلمان ځوان له خپل اصل څخه پردی کړي. دا د قرآن کریم له دې آیت سره سمون لري:

(البقرة: ۱۲۰) د دې آیت پیغام دا دی چې کفري قوتونه به تر هغه راضي نه شي، ترڅو چې مسلمانان د دوی لاره خپله نه کړي. دا هماغه ستراتېژي ده چې نننۍ غربي تمدن یې تعقیبوي، مسلمانان هڅوي چې د خپلو ارزښتونو پر ځای غربي سیکولر افکار ومني، د دیني شعایرو پر ځای مادي ژوند ته ارزښت ورکړي او د دیني اخلاقي معیارونو پر ځای د فردي خواهشاتو پیروي وکړي.

د اسلامي هویت ساتنه د هر مسلمان لپاره مهمه دنده ده. اسلام یوازې د عباداتو مجموعه نه ده، بلکې د ژوندانه بشپړ نظام دی چې د عقیدې، اخلاقو، عدالت، علم او تمدن اساس پرې ولاړ دی. هرکله چې مسلمانان خپل هویت ته ژمن پاتې شوي، عزت او ځواک یې خوندي شوی، خو کله چې د پردیو فکري او اخلاقي ارزښتونه یې منلي، کمزوري شوي او خپلواکي یې له لاسه ورکړې ده. رسول الله ﷺ خپل امت ته دا مهم پیغام ورکړی چې د نورو ملتونو د ژوند، دودونو او ارزښتونو تقلید انسان له خپل اصل څخه وباسي. حدیث شریف وایي: "مَنْ تَشَبَّهَ بِقَوْمٍ فَهُوَ مِنْهُمْ" (سنن أبي داود: ٤۰۳۱). دا وینا یوازې د ظاهري تقلید په اړه نه ده، بلکې د فکري او اخلاقي پیروۍ اغېزې هم پکې شاملې دي.

مخکې مو یادونه وکړه چې هر کله مسلمانانو د خپل اسلامي هویت ساتنه کړې، د تمدني برلاسي مقام یې ساتلی. د اندلس مسلمانان د علم، تمدن او اخلاقو لوړ مثال وو، خو چې کله یې د پردیو فکري او ټولنیز نظامونه خپل کړل، اخلاقي کمزورتیا او فکري انحراف یې د زوال لامل شو. همدا شان، عثماني خلافت د اسلامي ارزښتونو پر بنسټ ځواکمن و، خو د غربي تمدن د اصولو منلو کمزوری کړ. دا تجربې ښیي چې د خپل دیني هویت نه ساتل امت ته جدي زیانونه رسوي.

قرآن کریم مسلمانان له دې خطره خبروي. الله تعالی فرمایي: (هود: ۱۱۳). دا آیت مسلمانانو ته پیغام ورکوي چې د هغو خلکو نظام ته زړه مه ښه کوئ چې د الهي هدایت خلاف روان دي، ځکه چې دا کار د دنیا او آخرت د تباهۍ لامل کېږي. که مسلمانان د پردیو فکري او ټولنیزو ارزښتونو منلو ته دوام ورکړي، د خپل دیني، سیاسي او تمدني ځواک کمزوري کېدل به یې حتمي وي.

د نبوي دورې صحابه کرام د خپل اسلامي هویت په ساتلو کې ثابت قدمه وو. حضرت عمر فاروق رضی الله عنه به تل تأکید کاوه چې مسلمانان باید د پردیو تقلید ونه کړي، ځکه چې دا کار کمزوري زېږوي. هغه ویلي: "نَحْنُ قَوْمٌ أَعَزَّنَا اللَّهُ بِالإِسْلَامِ فَمَهْمَا نَطْلُبُ الْعِزَّةَ بِغَيْرِهِ أَذَلَّنَا اللَّهُ". دا جمله روښانه کوي چې د مسلمانانو عزت یوازې د اسلامي ارزښتونو په ساتلو کې دی. که دوی د پردیو نظریو او افکارو لاره خپله کړي، ذلت ته به ولاړ شي.

د اسلامي هویت ساتل د فردي مسئولیت تر څنگ د ټول امت گډ مسئولیت دی. اسلامي پوهان، مشران، والدین او د ټولنې هر غړی باید د نوي نسل فکري روزنه داسې وکړي چې هغوی د خپل دیني هویت ارزښت درک کړي. که اسلامي ارزښتونه خوندي نه شي، امت به نور هم کمزوری شي. د اسلامي هویت ساتنې سره د امت د عزت، قوت او پرمختگ راز تړلی دی، چې هر مسلمان باید ورته جدي پام وکړي.

مهمه داده چې مسلمانان له علمي، اقتصادي او سیاسي لحاظه خپلواک شي، ترڅو د غربي فکري یرغل په وړاندې قوي ودرېدلای شي. د اسلامي تمدن تاریخ دا ثابتوي چې که مسلمانان خپل فکري استقلال وساتي، د علم او تمدن په ډگر کې خپله اصلي مرتبه بېرته ترلاسه کولای شي. د قرآن کریم دا آیت همدا حقیقت څرگندوي: (المنافقون: ۸) ژباړه: «عزت یوازې د الله، د هغه د رسول او مؤمنانو لپاره دی.» که مسلمان ځوان دا حقیقت درک کړي، د غرب فکري یرغل ته به تسلیم نه شي، خپل اسلامي هویت به وساتي او د امت د عزت د بیا احیا لپاره به یو مهم رول ولوبوي.

# افغان اعلانات

## اعلان دعوت به داوطلبی

عنوان: پروژه تهیه و تدارک سولر سیستم شفاخانه کادری پوهنتون کندهار

شماره دعوت به داوطلبی:

MOHE/1404/NCB/G-004

وزارت تحصیلات عالی از تمام داوطلبان واجد شرایط دعوت می نماید تا در پروسه داوطلبی پروژه تهیه و تدارک سولر سیستم شفاخانه کادری پوهنتون کندهار اشتراک نموده و نقل چاپ شده شرطنامه مربوط را به طور رایگان در حافظه یا فلش دسک از ریاست تدارکات وزارت تحصیلات عالی بدست آورده، آفرهای خویش را مطابق شرایط مندرج شرطنامه و طبق طرزالعمل تدارکات طور سربسته از تاریخ نشر اعلان الی ساعت {۱۰:۰۰} قبل از ظهر به روز {دوشنبه} تاریخ {۱٤۰٤/۱۱/۰۱} به ریاست تدارکات وزارت تحصیلات عالی واقع کارته چهار ناحیه سوم کابل افغانستان ارائه نمایند. آفرهای ناوقت رسیده و انترنیتی قابل پذیرش نمی باشد.

تضمین آفر به شکل بانک گرنتی مبلغ (۱۳۰,۰۰۰) یکصدو سی هزار افغانی ارایه گردد.

تضمین آفر باید مدت ۲۸ روز بیشتر از مدت اعتبار آفر باشد، یعنی مدت ۱۱۸ روز از تاریخ بازگشایی آفرها قابل اعتبار باشد.

جلسه آفر گشایی به روز { دوشنبه} تاریخ {۱٤۰٤/۰۱/۱۱} ساعت {۱۰:۰۰قبل از ظهر}در{صالون آفرگشایی ریاست تدارکات وزارت تحصیلات عالی واقع کارته چهار ناحیه سوم کابل افغانستان} تدویر می گردد.

شماره تماس:۰۲۰۲۵۱٤۰۷۸

آدرس الکترونیکی: @saririnasrat۹۰gamail.com

نوت: جلسه قبل از آفرگشایی به روز شنبه ۱٤۰٤/۰۱/۲ ساعت ۱۰:۰۰ قبل از ظهر در آمریت تدارکات اجناس و خدمات ، ریاست تدارکات وزارت تحصیلات عالی تدویر می گردد.۹۶۹۳

## اطلاعیه تقرری

قرار است محترم ذبیح الله فرزند حمید الله دارنده تذکره شماره (۴۶۳۶۸-۰۳۰۱- ۱۴۰۱) مسکونه فعلی ناحیه در مربوطات شاروالی کابل بحیث دریور تقرر حاصل نماید نامبرده اگر به دوایر و موسسات مسوولیت داشته باشد الی مدت یک هفته به ریاست مالی و اداری شاروالی کابل مراجعه نموده در غیر آن حق شکایت را نخواهند داشت.۷۶۷۸

## اطلاعیه مفقودی

یک جلد پاسپورت تجارتی به اسم خالد احمد فرزند عبدالحفیظ مفقود گردیده از اعتبار ساقط می باشد.۹۶۷۱

## اطلاعیه فروش موتر

اسامی محترم شرکت نوین احمدی لمتید یک عراده موتر پلیت ۴۳۹۵۸-۲ ش کابل نوع تیوتا کرولا سالون خویش را بعد از طی مراحل قانونی خرید و فروش بالای نورآقا فرزند محمد یوسف بفروش رسانیده است. بناء اشخاص ادارات و موسساتی که با عراده فوق کدام معامله داشته باشند الی مدت سه یوم به مدیریت ترافیک کابل اطلاع دهند. ۹۶۶۷

اطلاعیه دعوت به داوطلبی

وزارت عدلیه از تمام داوطلبان واجد شرایط دعوت مینماید تا در پروسه داوطلبی پروژه تدارک ( دو نوع تیل به مقدار ۹۰،۰۰۰ هزار لیتر تیل پطرول A۹۲ و به مقدار ۶۰،۰۰۰ هزار لیتر تیل دیزل LOS۶۲ ) مورد ضرورت این وزارت اشتراک نموده و نقل شرطنامه را از تاریخ نشر اعلان الی مدت ۲۱ روز تقویمی از آمریت تدارکات بدست آورند جلسه آفرگشایی به ساعت ۱۰:۳۰ بجه قبل از ظهر به روز شنبه ۱۴۰۴/۱/۱۰ در منزل دوم دست چپ آمریت تدارکات وزارت عدلیه برگزار میگردد.

تضمین آفر به مبلغ (۴۰۰۰۰۰) چهار صد هزار افغانی تضمین بانکی و یا پول نقد از نزد داوطلب اخذ میگردد آفرهای ناوقت رسیده و انترنیتی قابل پذیرش نمی باشد.۹۶۶۴

## اطلاعیه فروش موتر

اسامی محترم حبیب متین لمتید یک عراده موتر پلیت ۱۲۳۷۱-ل کابل نوع بنز لاری جرمنی خویش را بعد از طی مراحل قانونی خرید و فروش بالای اسماعیل فرزند صابر میر بفروش رسانیده است.

بناء اشخاص ادارات و موسساتی که با عراده فوق کدام معامله داشته باشند الی مدت سه یوم به مدیریت ترافیک کابل اطلاع دهند. ۹۶۷۷

## اطلاعیه فروش و تغییر اسم کلینیک

اسامی محترم داکتر میوند فرزند حبیب الرحمن مالک (شفاخانه معالجوی بیست بستر آئینه صحت) که قبلا ذریعه مکتوب شماره ۵۵۵۰۲۴ مورخ ۱۴۰۰/۲/۱رسما از طریق این ریاست در مربوطات ناحیه چهارم شهر کابل افتتاح گردیده ، اکنون طی درخواستی به مقام محترم وزارت صحت عامه خواهان تنزیل شفاخانه بیست بستر معالجوی خویش به شفاخانه پنج بستر جلدی گردیده است که مقام محترم احکام لازم ارشاد فرموده اند.

اشخاص ، موسسات و دوایر امارتی که در مورد شفاخانه فوق الذکر ادعای داشته باشند از تاریخ نشر اعلان الی مدت ده یوم به ریاست محترم تنظیم و هماهنگی سکتور خصوصی وزارت صحت عامه مراجعه نموده در غیر آن ادعای شان باطل می باشد.۹۶۶۹

## اطلاعیه تغیر مکان رهنمای معاملات

دفتر رهنمای معاملات محب زاده دارنده جواز شماره ( ۵۷۶۵) به اسم محترم محمد علی فرزند محب علی واقع سرک اول کارته ۴ ناحیه ۳ موقعیت دارد و میخواهد به ساحه چهار دارالمعلمین ناحیه ۳ شاروالی کابل نقل مکان نماید . بناء مراتب به آگاهی شما رسانیده شد.۹۶۷۲

**موضوع :نشر اعلان پروژه تهیه و تدارک اجناس تکنالوژی معلوماتی و رنگباب (کارتریج) برای سال مالی ۱۴۰۴**

**شماره دعوتنامه داوطلبی : ASA/1404/G-004**

**اداره اکادمی علوم امارت اسلامی افغانستان** ازتمام داوطلبان واجد شرایط دعوت می نماید، تا در پروسه تهیه و تدارک اجناس تکنالوژی معلوماتی و رنگباب (کارتریج) برای سال مالی *1404* اشتراک نموده وسافت شرطنامه مربوط را در بدل مبلغ ۱۰۰۰ یک هزار افغانی از آمریت تدارکات، ریاست عمومی مالی و اداری اکادمی علوم به دست آورده، آفر های خویش را مطابق شرایط مندرج شرطنامه و طبق قانون و طرزالعمل تدارکات طور سر بسته از تاریخ نشر اعلان الی ساعت ۱۱:۰۰ قبل از ظهر بتاریخ ۱۰ حمل سال ۱۴۰۴ به آمریت تدارکات اکادمی علوم واقع شهرنو سرک شاه بوبوجان، شهر کابل، افغانستان ارایه نماید.آفر های نا وقت رسیده و انترنیتی قابل پذیرش نمی باشد.

تضمین آفر به شکل **تضمین بانکی مبلغ ۱۲۰۰۰۰ یکصدو بیست هزار افغانی** و جلسه آفر گشایی به ساعت ۱۱:۰۰ قبل از ظهر بتاریخ ۱۰حمل ۱۴۰۴ در شعبه ریاست روابط فرهنگی اکادمی علوم افغانستان تدویر میگردد.

**نوت : عقد قرارداد مطابق فقره سوم ماده دوازدهم قانون، مشروط به منظوری بودجه سال مالی ۱۴۰۴ می باشد**

| شماره | معیارات ارزیابی | |
|---|---|---|
| ۱ | حجم معاملات | قابل تطبیق نیست |
| ۲ | تجربه مشابه | قابل تطبیق نیست |
| ۳ | سرمایه نقدی | مبلغ : ۱۰۰۰۰۰۰ یک *میلیون* افغانی. |
| ۴ | تضمین آفر | مبلغ : ۱۲۰۰۰۰ یکصدو بیست هزار افغانی |

۹۶۹۰

## داعشي خوارج د کفري ...

بلکې د دې ډلې د افراطي ایدیولوژیو او فکري کړنو پر وړاندې هم یوه ستره جګړه وه. اسلامي امارت د دوی د فکري شبکو پر ضد هم سخته مبارزه کړې او د دغو شبکو د خوځښتونو د ځواب لپاره یې تدابیر نیولي.

د داعش خوارجو دا ډله، له بې رحمه جنګیالیو او افراطي جګړه مارانو څخه جوړه شوې، چې نه یوازې د مسلمانانو تر منځ اختلافات رامنځته کوي، بلکې د اسلامي نړۍ پراختیا ته هم خطرناکې کړنې ترسره کوي. اسلامي امارت د دې ډلې د له منځه وړلو لپاره د ځان ټولو منابعو او قوتونو کارولو ته دوام ورکړ. د اسلامي امارت په بریالیتوب کې، د داعش خوارجو د نړۍ په کچه پراخ پرمختګونه محدود شول او په افغانستان کې نیست او نابود کړای شول.

داعش خوارج چې د اسلام دین په نوم د خپلو فسادونو د پراختیا لپاره کار کوي، دوی خپله افراطي ایډئولوژي پر مسلمانانو باندې مسلطوي. خو دا ډله نه یوازې د اسلام مخالفه ده، بلکې د مسلمانانو پر وړاندې یې ظلم، فساد او بې اتفاقي هم راوستلې ده. د اسلامي امارت له لورې د دې خوارجو پر ضد مقاومت یوه بې مثاله بریا وه. دا مبارزه نه یوازې د داعش د فزیکي قوت د له منځه وړلو لپاره وه، بلکه د دې ډلې د فکري فساد مخه هم ونیول شوه. اسلامي امارت د دې خوارجو د شومو اهدافو د ناکامولو لپاره خپل ځواک او منابع پوره کړي او د دې ډلې د ختمولو لپاره یې له سترو مبارزو څخه کار اخیستی.

دا یې وخت دې چې ټول مسلمانان په ټوله نړۍ کې بالخصوص په ګران هیواد افغانستان کې د داعش خوارجو په وړاندې متحد شي. د اسلامي امارت په بریا سره، ټول مسلمانان باید د دې ډلې د شومو اهدافو پر ضد خپل ځواک وکاروي. دا د ټولو مسلمانانو لپاره یوه اړینه اړتیا ده چې د داعش خوارجو د فتنې مخه ونیسي او د اسلامي نړۍ د پراختیا لپاره یو ځای شي.

د دې ډلې د فتنې د له منځه وړلو لپاره، مسلمانان باید د اسلامي امارت په مشرۍ سره خپل کار وکړي او خپل ټول توان د دوی د شومو اهدافو پر وړاندې وکاروي. د داعش خوارجو د فتنې په وړاندې د مبارزې لپاره، باید ټول مسلمانان یوځای شي او د دوی د شومو اهدافو د ناکامولو لپاره خپل غږ او قوت یو ځای کړي. د داعش خوارجو د نابودۍ لپاره باید هر مسلمان خپل مسئولیت په جدي توګه ترسره کړي، ترڅو د دې فتنې هره هڅه پای ته ورسېږي.

په پای کې داعش خوارج د کفري نړۍ هغه اجیران دي چې د اسلام له مبارک دین څخه یې ناوړه استفاده کړې او د مسلمانانو د وینو توېولو لپاره یې یوه وحشیانه او افراطي ډله جوړه کړې ده. دا ډله نه یوازې د اسلامي اصولو پر ضد عمل کوي، بلکې د مسلمانانو تر منځ د تفرقې، جګړو او ګډوډۍ د رامنځته کولو لپاره کار کوي. د دوی اعمال، چې د جهاد تر نوم لاندې ترسره کېږي، له حقیقي اسلام سره هېڅ تړاو نه لري، بلکې د اسلام د دښمنانو شومو موخو ته خدمت کوي.

خو الحمدلله، د اسلامي امارت سرښندونکو مجاهدینو د دې فتنه‌ګرو پر وړاندې کلک او هوښیار دریځ نیولی دی. اسلامي امارت نه یوازې د داعش فزیکي شتون له منځه یووړ، بلکې د دوی فکري بنسټونه یې هم وران کړل، د دوی تبلیغاتي او ایدیولوژیکي شبکې یې وځپلې او د دوی اجیرې ډلې یې له بشپړې ماتې سره مخ کړې. دغې بریا ثابته کړه چې یوازې د رښتینو اسلامي اصولو پیروي، د وحدت ساتل او د فتنو پر وړاندې مقاومت کولی شي د امت عزت، امنیت او ثبات تضمین کړي.

اوس د ټول اسلامي امت مسئولیت دی چې د اسلامي امارت له بریاوو څخه زده کړه وکړي او د داعش خوارجو د فتنې د پای ته رسولو لپاره لاسونه سره یو کړي. مسلمانان باید د دې خوارجو پر ضد د اسلامي امارت د مبارزې ملاتړ وکړي، ترڅو د کفري نړۍ دا اجیران په بشپړ ډول نابود شي او د اسلامي نړۍ امنیت، وحدت او پرمختګ وساتل شي. یوازې د اسلامي امارت تر سیوري لاندې، مسلمانان کولای شي له دې فتنې ځان خلاص کړي او د یوه پیاوړي، خپلواک او متحد اسلامي امت پر لور ګام پورته کړي.

## محاکم او نور ارګانونه ...

د ښځو حقوق تلف کړي او یا هغو ته په بده وګوري.نوموړي ټینګار کوي، د اسلامي امارت د محاکمو او نورو اړوندو ارګانونو مکلفیت دي، چې د ښځو د حقوقو په تأمین کې خپله ټوله سعي وکړي د هغوی د زوجیت اختیار یقیني کړي، د مهر او میراث حق ورته حاصل او د هغوی له ټولو حقوقو څخه ساتنه او څارنه وکړي.د اسلامي امارت د ویاند په وینا: د اسلامي شریعت او افغاني ټولنې له فرهنګ او عنعناتو سره سم د افغانې مېرمنو ټول اساسي حقونه تأمین شوي.نوموړي وایي : باید هېره نشي چې مورږ د افغان مېرمنو حقوقو په یوه اسلامي او افغاني ټولنه کې تر بحث لاندې لرو، چې د غربي ټولنې او د هغوی له فرهنګ سره ښکاره توپیرونه لري او د محاسباتو په وخت کې باید په نظر کې ونیول شي.

## تېر کال د افغانستان ...

پر نړیوالو ټولنې غږ کوي، چې د افغانستان کنګل شوې شتمنۍ آزاده کړي چې پرمټ یې افغانان وکولی شي د پانګونې په وړاندې خنډونه لـه منځه لرې کړي او افغانستان پر ځان بسیا شي.اقتصادي کارپوهان په هېواد کـې دننـه د پانګونې پـر جذب د کورنیو تولیداتو پـر پیاوړتیا او د صادراتو پر زیاتوالي ټینګار کوي او په وینا یې، د هېواد د اقتصاد په برخه کې اغېزمن تمامېدلي شي.اسلامي امارت په هېواد کې د لویو اقتصادي پروژو پلې کول، د کورنیو تولیداتو وده او پولي ثبات د هېواد د اقتصادي ټیکاو مهم اړخونه بولي.

## تېرو ۱۱ میاشتو کې ...

(( د ۱۴۰۳ کال د ۱۱ میاشتو په لړ کې د څه باندې ۱۴میلیونو ډالرو په ارزښت شاوخوا ۱۱۰۰ ټنه جلغوزې بېلابېلو هېوادونو ته صادر شوې دي.))د جلغوزیو اقتصادي اهمیت ته په کتو، د اقتصادي چارو ځینې شنونکي پر دې باور دي، چې که په نړیوالو بازارونو کې د دې محصول د پلور لپاره لا زیاتې هڅې وشي، نو افغانستان کولای شي له دې لارې د پام وړ عواید ترلاسه کړي.د اقتصادي چارو شنونکی، عبدالنصیر رښتیا وایي: (( تور جلغوزي یو ډېر ارزښتناک محصول دی، چې په نړیوالو بازارونو کې ډېر پېرودونکي لري. هر څومره چې د دې محصول پر صادراتو تمرکز وشي، نه یوازې ملي عواید زیاتېږي، بلکې نوې کاري زمینې هم رامنځته کېږي.))د اقتصادي چارو بل شنونکی، محمد نبي افغان هم وایي: (( د افغانستان وچه مېوه په نړیواله کچه ډېر شهرت لري. که موږ د بسته‌بندۍ او پروسس په برخه کې پانګونه وکړو، کولای شو د افغانستان ځای په نړیوالو بازارونو کې لا پیاوړی کړو.))

## کابل کې یوې خیریه موسسې ...

غوښتنه شوې ده.د یادونې وړ ده، چې د دې پروژې مجموعي لګښت ۱۰۱زره ۴۷۰امریکایي ډالره کېږي او د یادو ولایتونو د شهیدانو او معلولینو چارو ریاستونو په همغږۍ به تطبیق شي.

## تېرو څو میاشتو کې د سورې ...

د افغاني سرې میاشتې ټولنې له خوا دوه ځله د المان هېواد ته د درملنې لپاره استول کېږي؛ چې په روان کال کې هم لسګونه تنه په اور سوځېدلي او د میکروبي هډوکو په ناروغۍ اخته ماشومان جرمني ته استول شوي او درملنه یې شوې ده.له پلازمېنې کابل څخه د یوه تن ناروغ ماشوم پلار ښاغلي ضیاء الرحمن وایي:ډېرخوښ اوخوشحاله یم چې د زوی د زړه د سورې عملیات او درملنه مې په خپل هېواد کې په بریالۍ توګه ترسره شوه. دافغاني سرې میاشتې ټولنې موخه د ژوندي ساتلو، روغتیا او انساني کرامت، په ځانګړې توګه د پېښو، وسلوالو شخړو او نورو بېړنیو حالاتو کې، د پیاوړې ټولنې په رامنځته کولو کې مرسته، د رضاکارانو، غړو او بېلابېلو کارکوونکو غوره تنظیم او د سره صلیب او سرې میاشتې د نړیوال غورځنګ په یووالي او یو موټي کولو، د سره صلیب او سرې میاشتې د نړیوال غورځنګ د بنسټیزو اصولو په ځانګړې توګه د ناپلوۍ، ناپېیلتوب او خپلواکۍ په رعایت سره په بشرپالو هڅو کې فعاله ونډه لري. سمیع الله مومند

## د عدلیې وزیر د اسلامي ...

پر خپله اکس پاڼه لیکلي، چې (د رابطة العالم الاسلامي له لورې دایر شوې، المؤتمر الدولي بناء الجسور بین المذاهب الاسلامیة تر نامه لاندې دوه ورځنۍ نړیوال کنفرانس کې د افغانستان د اسلامي امارت د عدلیې وزارت سرپرست ګډون وکړ.)

ښاغلي فطرت په دې اړه نور جزئیات نه دي خپاره کړي.

د معلوماتو له مخې دغه کنفرانس د سعودي عربستان د مکې مکرمې په ښار کې جوړ شوی او د څه باندې ۹۰ هېوادونو دیني عالمانو په کې ګډون کړی دی.

## د پاکستان له زندانونو ...

هڅې روانې دي. لـه بل پلـوه د کډوالۍ نړیوال سازمان یا آی‌او‌اېم د یوه نوي راپور په خپرولو سره ویلي، چې په تېرو دوو اوونیو کې ۱۱ زره او ۶۷۰ افغان کډوال له پاکستانه افغانستان ته ستانه شوي دي.

## فراه کې د یوې پروژې ...

چې دا پروژه د دوو میاشتو په موده کې بشپړه شوې.د فراه ښار اوسېدونکو د یادې پروژې په بشپړېدو خوښي ښودلې او له حکومت څخه یې د ورته نورو پروژو د پلي کولو غوښتنه وکړه.

## هیواد کې د پستې بڼونو ...

او همداراز په تخار، سمنګانو او بادغیس ولایتونو کې د چرګانو د فارمونو د جوړولو په اړه د کرنې وزیر ته معلومات ورکړي. یاده ټولنه پلان لري، چې پـه لویدیځو او شمال‌لویدیځو ولایتونو کې د پستې بڼونو او ځنګلونو د جوړولو او همداراز د هګیو د تولید په سکتور کې میلیونونه ډالره پانګونه وکړي.د یادې ټولنې غړو د کرنې له وزیر څخه غوښتنه کړې، چې د ځمکو د اجارې او د دوی د فعالیتونو د پیل په برخه کې همکاري وکړي.مولوي عطاءالله عمري د دوی د غوښتنو په ځواب کې ډاډ ورکړی او ویلي یې دي،چې حکومت به له دې پروژو ملاتړ وکړي او د یادې ټولنې د کار د پیل لپاره به ټولې لازمې اسانتیاوې برابرې کړي.

## متحدو عربي اماراتو کې مېشتو ...

پـه متحده عربي اماراتو کې مېشت افغانان د خپلو الکترونیکي پېژندپاڼو او هویتي ستونزو د حل لپاره مراجعه کوي. د احصایې او معلوماتو ملي ادارې، د الکترونیکي تذکرو د وېش لړۍ د پراختیا په برخه کې د خپلې ژمنتیا پر بنسټ د روان کال په څنګ کې مېشت کې په متحدو عربي اماراتو کې یاد مرکز پرانیست، چې بهر مېشتو هېوادوالو ته لا ډېرې اسانتیاوې برابرې شي.د یادولو وړ ده، چې د احصایې او معلوماتو ملي ادارې په بهرنیو هېوادونو کې د مېشتو افغانانو د هویت د تثبیت او د الکترونیکي پېژندپاڼو د وېش، له وېش وروسته خدمتونو، زېرون کارتونو او د مړینې د پارچو د وېش په تړاو د تېر ۱۴۰۲ لمریز کال د سلواغې پر ۴مه له بهرنیو چارو وزارت سره هوکړه‌لیک لاسلیک کړي و.

## سږ کال د لوی مقیاس کانونو ...

د کرومایټو ساحې د پراختیا پروژه، د بادغیس د تایمني لامان درې د ډبرو سکرو پروژه، د هرات د کشک او تیرپل د ګازو حوزې پروژه، د فاریاب د طوطي میدان ګازو پروژه، د جوزجان د لوی خنګل د ګازو پروژه او د لوګر د التمور د سمنټو پروژه شامله ده.

## حوثیانو اسرائیلو ته ...

د اسرائیلو لور ته پر تلونکو سوداګریزو او پوځي بېړیو لسګونه بریدونه کړي دي.دا خبرداری وروسته له هغه ورکړ شوی، چې صهیونیستي رژیم د روانې زېږدیزې میاشتې له دویمې نېټې راهیسې غزې ته د بشري مرستو د داخلېدو مخه نیولې ده.د یمن د حوثیانو مشر دغه‌راز ویلي، نړۍ د غزې د ځوربېدونکو خلکو پر محرومیت، چې حتی روغتیایي توکو ته هم لاسرسی نه لري، سکوت کړی او یوازې تماشا یې کوي. نوموړي زیاته کړې، چې اشغالګر رژیم په غزه کې د نسل وژنې په شمول خپلو ناوړه جنایاتو ته ادامه ورکړې. حتا پر روغتیایي مرکزونو یې هم پوځي بریدونه کړي، چې له هر ډول بشري قوانینو څخه ښکاره سرغړونه ده.

## له متحدو عربي اماراتو ...

د ریل پټلۍ له لارې شل واګونه د بورې رارسېدلې دي چې د دې تر څنګ د ایران له هېواده هم شپږ واګونه سیمنټ رارسېدلي دي. پـه دې اړه د هرات ولایت ویاند مفتي یوسف سعید وایي: د هرات خواف د وسپنې پټلۍ پروژه د هېواد د زېربناوو له اړینو پروژو څخه ده چې پر سوداګریز لېږد رالېږد سر بېره د سیمې، د نړۍ هېوادونو او د مسافرو د تګ راتګ پـه برخه کې اړیکې پیاوړې کوي. د وسپنې پټلۍ له لارې په ګټې اخیستنې سره افغانستان کولای شي چې خپلې سوداګریزې اړتیاوې پـه چټکه او ارزانه توګه پوره کړي. نوموړي همداشان وایي: د هرات ـ خواف د وسپنې پټلۍ له لارې د مالونو انتقالاتو کې زیاتوالی راغلی دی چې پخوا به په میاشت یا اوونۍ کې انتقالات تر سره کېدل خو په دې وروستیو کې د هرې ورځې په جریان کې له یادې لارې له افغانستان او د سیمې لـه هېوادونو د مالونو لېږد رالېږد تر سره کېږي چې د چټکتیا په حال دی. د هرات ـ خواف د وسپنې پټلۍ د یاد ولایت لپاره مهمه پروژه ده او مسئولین هڅه کوي چې د صنعتکارانو او سوداګرو لپاره زمینه برابره کړي تر څو لـه دې لارې په کم وخت کې په ارزانه توګه د ګاونډیو، سیمې او نړۍ لـه هېوادونو واردات او صادرات ولري. پـه ورته مهال د نړیوالو اړیکو متخصص عمرزاده وایي: د اقتصاد د پیاوړتیا لپاره پـه کار ده چې د ګاونډیو، سیمې او نړۍ هېوادونو سره اقتصادي اړیکې پیدا او باید ولرل شي، نو که وګورو افغانستان همهاله په دې برخه کې کوټلي ګامونه اخیستي او د څو لسیزو مزل یې په تېرو دریو کلونو کې کړی دی. د وسپنې پټلۍ له لارې سوداګري سر بېره پر دې چې د هېوادونو اقتصادي اړیکې پیاوړې کوي، بلکې د سیاسي اړیکو ټینګښت ته هم پرمختګ ور کوي. زیارمل هوتک

## سږکال د ټرافیکي پېښو ...

لاس موټر، د موټر چلوونکو بې احتیاطي، د موټر چلولو د جواز نه لرل او د ټرافیکي قوانینو نه رعایتول دي.))له بلې خوا، موټر چلوونکي د ټرافیکي پېښو د رامنځته کېدو لاملونه د معیاري سړکونو کموالی او د لویو لارو په شمول په واټونو کې د ټرافیکي څراغونو کموالی بولي او د ټرافیکو له ریاسته غواړي ،چې یادو ستونزو ته رسېدنه وکړي.موټرچلوونکی بریالی وایي: (( حکومت ته وایم ،چې دا ټرافیکي نښې او اشارې ټولې خرابې دي؛ که دا جوړې شي، د ټرافیکو پولیسو ته به هم اړتیا نه وي او پېښې به کمې شي.))یو بل موټرچلوونکی ابمل وایي: (( خبره دا ده چې دلته اصول نشته، هرڅوک د موټر چلولو ته ناست دی. غریبې ډېره شوې او بل کار نشته، ټولو د موټر چلولو تـه مخه کړې. له هغه چلوونکي حادثه نه کېږي، چې ۲۰ کاله تجربه لري، خو هغه کسان ډېرې حادثې کوي، چې تازه یې موټر چلول پیل کړي.)) پـه ورته مهال، د کابل اوسېدونکي بیا د ټرافیکي پېښو د رامنځته کېدو لاملونه بېلابېل بولي او په خبره یې د موټر چلولو اجازه لیک (لایسنس) نه لرل او د موټر چلولو پر مهال د نشه یي توکو کارول هم د دې سبب شوي ،چې ټرافیکي پېښې زیاتې شي.دا په داسې حال کې ده چې هر کال د موټر چلوونکو د بې احتیاطۍ او د قوانینو د نه مراعاتولو له امله په ټول هېواد کې په کلنۍ توګه زرګونه ټرافیکي پېښې رامنځته او په پایله کې یې سلګونه کسان مړه او ژوبل کېږي.

## په هیواد او بهر کې ...

ښاغلي سادات د ملي لوبډلو د لوبو په اړه هم وویل چې په اګست، سپتمبر او اکتوبر کې به لـه بنګله‌دېش، زېمبابوې، ایرلینډ او پاکستان سره سیالۍ ولري او ترڅنګ به یې د ملي لوبډلې اسیا جام هم ترسره شي.ښاغلي سادات په افغانستان کې د لوبلړیو په اړه هم وویل، چې د ځینو لوبلړیو ترڅنګ به د شپږیزې لوبلړۍ هم ترسره شي: په راتلونکي کې بـه د میرویس نیکه درې ورځنۍ، د احمدشاه ابدالي څلور ورځنۍ یا فرست کلاس، شپږیزه، د معلولینو او لېښت اي سیالۍ ترسره شي.نوموړي د قوشتېپې سیالیو په اړه هم زیاته کړه: هغه لوبې چې هر کال کېږي، لکه تېر کال مو چې ملي شل اوریز لیګ د قوشتېپې په نوم ترسره کړ، سږکال هم که وخت ورته و، تر سره به یې کړو. تاج محمد بهار

Hewad Daily

یکشنبه د رمضان المبارک۹ مه ۱٤٤٦ق کال د ۱٤۰۳ ل کال د کب ۱۹ مه د 2025 م کال د مارچ 9 مه

دورځپاڼو رئیس : انجنیر عُزیر «بریالی»
موبایل : ۰۲۰۲۵۲۶۳٤۰
آمر او مسئول مدیر : عطاء الله مبارز
موبایل: ۰۷۷٤۳۱۸۹۰۲
مسئول سکرتر: شېرمحمدنظري
موبایل: ۰۷۸۸۵۰۳۳۷۱

پته: اتمه ناحیه، د المپیک څلورلارې، د حضوري چمن ختیځ، کابل افغانستان
داړیکو شمېره: س۰۲۵۲۶۳٤۰ - ۰۲۰
E-mail :info@hewaddaily.com
E-mail : hewad1948@gmail.com
دهیوادورځپاڼې انټرنېټي پاڼې دلاندې وېب سایټ له لارې هم کتلی شئ
وېب سایت: www.hewaddaily.com
دشکایاتو اوتوزیع ځانګه:
۰۲۰۲۳۱۲۵۰۹-۰۷۶۶۰۴۴۹۶۶-۰۷۳۶۰۶۰۷۳

# سږ کال د لوی مقیاس کانونو د استخراج ۱۱ پروژې منظورې شوې

د ریاست‌الوزراء اقتصادي معاونیت وایي چې د دغه معاونیت له لوري، په ۱۴۰۳مالي کال کې د ستر مقیاس د کان کیندنې او استخراج یوولس پروژې منظورې شوې دي.
د ریاست‌الوزراء د اقتصادي معاونیت په راپور کې ویل شوي چې په منظورو شویو پروژو کې د جوزجان د یتیم تاق سمنټو پروژه، د فاریاب د میمنې د مالګې د کان پروژه، د جوزجان د درزاب د مالګې کان پروژه، د فاریاب د اندخوي د مالګې کان پروژه، د کندهار د شاه ولي کوټ د دره نور سیمې د مرمر ډبرو پروژه، په لوګر کې... ۳مخ

## حوثیانو اسرائیلو ته د غزې محاصرې د پای ته رسولو لپاره ۴ ورځې وخت ورکړی

د یمن د حوثیانو مشر عبدالمالک الحوثي خبرداری ورکړی، که د غـزې د بشري مرستو محاصره په څلورو ورځو کې پای ته ونه رسېږي، د اسرائیلـو پر ضد به سمندري بریدونه بیا پیل کړي.له هغه راهیسې، چې اسرائیلو پر غزه بریدونه پیل کړي، حوثیانو د فلسطینیانو په ملاتړ په سره سمندرګي کې ... ۳مخ

## له متحدو عربي اماراتو څخه د وسپنې پټلۍ له لارې ۲۰ واګونه هرات ته رسېدلي

د افغانستان اسلامي امارت د اقتصاد محوره پالیسۍ په لړلو سره د هېواد لپاره حیاتي پروژې په لاره اچولي او ډېرې یې ګټې اخیستنې ته سپارل شوي دي چې له هغې جملې د هرات خواف د وسپنې پټلۍ ده چې د سوداګرۍ، صنعت کارونو او مسافرو په برخه کې له ګاونډیو، سیمې او نړۍ سره د افغانستان د وصل کړۍ شوې ده چې په دې لړ کې د لېږد او رالېږد د چټکې پروسې په جریان کې د هرات خواف له لارې د افغانستان او سیمې هېوادونو سره د سوداګریزو مالونو په لړ کې تېرو څو ورځو کې له متحدو عربي اماراتو افغانستان ته... ۳مخ

## یمن کې د کډوالو ۲ کښتۍ ډوبې شوې

د کډوالۍ نړیوال سازمان وایي، چې د یمن د تعز ولایت د ذوباب سیمې ساحلونو ته نږدې دوه کښتۍ، چې له ۱۸۰ ډېر کډوال پکې سپاره وو، اوبو کې ډوبې شوې دي. د دې سازمان په وینا، د دغو کښتیو په سپرلیو کې لږ تر لږه ۱۲۴ نارینه او ۵۷ مېرمنې شاملې وې، چې له ډلې یې یوازې ۲ یمنۍ خدمې ژغورل شوي او پاتې نور تول ورک دي. یاد سازمان زیاتوي، وېره شته چې ټولو مسافرو او پاتې خدمو به ژوند بایللی وي.

### د کابل ټرافیکو ریاست:

## سږکال د ټرافیکي پېښو له امله نږدې ۷۰۰ تنو ته مرګ ژوبله اوښتې

د کابل د ټرافیکو ریاست چارواکي په روان ۱۴۰۳ کال کې د شاوخوا ۵۴۵ ټرافیکي پېښو د ثبتولو خبر ورکوي او وايي: د یادو پېښو د رامنځته کېدو عمده لاملونه د موټر چلوونکو بې احتیاطي او ټرافیکي اصولو ته نه پاملرنه ده.د دوی په خبره، د روان کال له پیل راهیسې رامنځته شویو ټرافیکي پېښو کې نږدې ۷۰۰ کسان مړه او ژوبل شوي دي.د کابل د ټرافیکو رئیس خیال محمد غاور وایي: (( موږ په روان کال کې ټولټال ۵۴۵ ټرافیکي پېښې لرو ،چې له امله یې ۲۹۷ تنه مړه شوي او ۳۸۵ تنه نور ژوبل شوي دي. د دې پېښو علتونه د پاکستان... ۳مخ

## غور کې لسګونه قومي شخړې حل شوې

د غور د سیمه ییزې اداري مسئولینو په دې ولایت کې د څه باندې شلو قومي ذات البیني قضیو د حلولو خبر ورکړی دی. د غور د والي ویاند شیخ مولوي عبدالواحد حماس وایي، چې د قومي اختلافاتو د حلولو لپاره زیاتې هڅې شوي او له تېر کال راهیسې په دې ولایت کې د بېلا بېلو قومونو ترمنځ ۲۱ قضیې چې په تېره اداره کې رامنځته شوې وې حل او د نورو قضیو پر حل کولو کار روان دی. په ورته وخت کې د غور اوسېدونکو د قومي شخړو د کمولو په برخه کې د افغانستان اسلامي امارت په ځانګړې ډول د دې ولایت د سیمه ییزو چارواکو د هڅو په اړه خوشبیني ښکاره کړه او ویې ویل ،چې په هېواد کې د اسلامي امارت له بریا وروسته په دې ولایت کې ډېر قومي اختلافات حل شوي دي.

## په هیواد او بهر کې د افغان کرېکټ راتلونکې سیالۍ

د افغانستان دکرېکټ لوبډلې په نړیواله کچه د پام وړ پرمختګ کړی او اوس د نړۍ د ۸ غوره لوبډلو په ډله کې راځي. د اتلانو جام کې دې لوبډلې د پام وړ لاسته راوړنې درلودې، چې له پاکستان، انګلستان او بنګله‌دېشه وړاندې یې پنځم مقام خپل کړی دی.د افغانستان دکرېکټ بورډ ملي لوبډله راتلونکي کې له بنګله‌دېش، زیمبابوې، ایرلینډ او پاکستان سره، الف یا د ابدالیانو لوبډله له سریلانکا او ایرلینډ سره او له ۱۹ کلنو څخه کم عمره لوبډله له نیپال سره او نړیوال جام ته د لارې موندنې سیالۍ لري.د افغانستان دکرېکټ بورډ ویاند نسیم سادات اماراتي ورځپاڼو ته د راتلونکو لوبو( له بهرنیو لوبډلو سره او په هیواد کې د داخلي لوبلړیو) په اړه وویل: زموږ د ۱۹ کلنو ملي لوبډله د اپرېل په میاشت کې له نیپال سره دوه اړخیزې سیالۍ لري، وروسته همدغه هېواد کې نړیوال جام ته د لارې موندنې سیالیو کې ګډون کوي؛ ترڅنګ یې په اپرېل میاشت کې الف لوبډله بیا په متحدو عربي اماراتو کې د سریلانکا او ایرلینډ کوربتوب کوي، چې پکې به دوه سیالۍ دوه اړخیزې وي( یوه به له سریلانکا او بله به له ایرلنډ سره) وي. بل درې اړخیز پنځوس‌اوره سیریز دی، چې هره لوبډله پکې څلور – څلور لوبې کوي... ۳مخ

## د پاشدان بند چارې په چټکۍ سره روانې دي

د هرات ولایت د اوبو او انرژۍ رئیس مولوي سردار عزیزي د پاشدان بند د چارو له بهیر څخه څارنه وکړه او اړوندو مسئولینو ته یې د چارو د غوره پرمخ بېولو په موخه اړیني لارښووني وکړې. پاشدان بند چې د هرات ولایت په کرخ ولسوالۍ کې موقعیت لري، د اوبو او انرژۍ وزارت تر کار لاندې له سترو پروژو څخه دی، اوس مهال د دغه بند په بېلابېلو برخو کې چارې په چټکۍ سره روانې دي.د دغه بند د چارو په بشپړېدو سره به ۵۴ میلیونه متره مکعبه اوبه زېرمه، دوه میګاواټه برښنا به تولید او ۱۳ زره هکتاره ځمکه به خړوبه شي.

## ننګرهار کې پر ۱۰۰جریبه ځمکه د املوکو او لېمو بڼونه جوړېږي

د ننګرهار ولایت د کرنې، اوبو لګولو او مالدارۍ ریاست مسئولین وایي، چې په دغه ولایت کې د دریو ولسوالیو په حدودو کې پر ۱۰۰ جریبه ځمکه د املوکو او لېمو بڼونه جوړېږي.د یاد ریاست رئیس مولوي محمد ولي محسن باختر اطلاعاتي آژانس ته وویل چې یاد بڼونه به د ډانېډا موسسې په مالي ملاتړ په روداتو، هسکې مېنې او کوټ ولسوالیو کې جوړ شي.مولوي محمد ولي محسن زیاته کړه، چې د دې بڼونو د جوړولو موخه د سرو املوکو د تولید زیاتوالی او د دغه محصول د کرنې وده ده.د یادونې وړ ده چې دغه پروژه به د یادو ولسوالیو د خلکو اقتصاد پیاوړی کړي او لسګونو تنو ته به په کې د کار زمینه هم برابره شي.

## د سوریې حکومت ۱۲۵تنه مخالفین اعدام کړي

ګارډین ورځپاڼې خبر ورکړی، چې د سوریې لاذیقه ولایت کې د شدیدو جګړو په پایله کې د سوریې امنیتي ځواکونو ۱۲۵ تنه مخالف وسله وال اعدام کړي دي.دې ورځپاڼې زیاته کړې د سوریې د حکومتي ځواکونو او د اسد رژیم د طرفدارانو ترمنځ د نښتو په پایله کې ۲۴۰ تنه پاځون کوونکي وژل شوي هم دي.د سوریې نوي رهبر احمد الشرع وړمه ورځ اسد ته وفادارو ځواکونو څخه غوښتي، چې خپلې وسلې دې پر ځمکه کېږدي او تسلیم دې شي.د یادونې وړ ده، چې د دواړو لوریو ترمنځ د پنجشنبه په ورځ نښتې پیل شوې، چې دا د اسد رژیم له سقوط وروسته د احمد الشرع الجولاني په مشرۍ د سوریې نوي حکومت سره لومړي بریدونه دي چې رامنځته کېږي.

## پاکستان یو ځل بیا د «ACC» کارت لرونکو افغانانو د اېستلو خبرداری ورکړ

د پاکستان د کورنیو چارو وزارت له اسناد لرونکو افغان کډوالو غوښتنه کړې ،چې د مارچ میاشتې تر وروستۍ نېټې له دغه هېواده ووځي. د وزارت په اعلامیه کې افغان کډوالو ته خبرداری ورکړ شوی، چې د راتلونکې میاشتې له لومړۍ به د کډوالو د ایستلو لړۍ پیل شي. په اعلامیه کې ویل شوي، چې حکومت د ټولو بې اسنادو کډوالو ترڅنګ د اسناد لرونکو افغان کډوالو د اېستلو پرېکړه کړې. پاکستاني چارواکي وایي: دغو کډوالو ته د اېستلو لپاره پوره وخت ورکړ شوی او د کډوالو د ستنېدو پر مهال به له هېچا سره ناسم چلند نه کېږي. له پاکستانه د کډوالو د اېستلو پروسه د ۲۰۲۳ کال د نومبر په میاشت کې پیل شوه. پاکستاني چارواکو ویلي: هغه کسان چې په دغه هېواد کې پاتې کېږي باید ټول قانوني پروسې بشپړې او د دوی اساسي قانون ومني.